# پښتو منظومي کيسې لنډۍ او غاړي



## د کتاب اړوند


**د کتاب  نوم : پښتو منظوميی کيسې لنډۍ او غاړي**

**ليکوال: څارنوال منګل احمد خان**

**مهتمم: استاد نوراحمد قران مل**

**خپرندوی: د کندهدار د معارف مطبعه**

**چاپ کال: ۱۳۸۴ لمريز**



د کتاب د چاپ حق له ليکوال سره ساتلئ

**اهداء**

د پښتو ادب ټولو مینانو ته !

لیکوال

## لیکلړ

# قلم دي يې ځواکمن وي

دګران ورور ښارنوال صاحب (( منګل احمد خان )) دا کتاب
ګوتې ماتر نظر تېر کړ چې په واقعیت کې یې په را ټولونه کې ډېره
خواري کړېده ، پر ګوتو دي یې برکت سي فکر یې قوي او قلم یې
ځواکمن غواړم دښاغلي دپیل خبري ډېري هم ښې پېیلي دي خو
دژبې دپېژند ولپاره یې که دګړ دوژبه را ښوولې وای نو دهمدې
کتابګوتې دمنځ پانو دمضمونونو سره یې پوره ملګر تیا ښودلای
سواې یعني دا چې کو ، ژبه چې ګران ښارنوال صاحب دپیل په خبرو
کې را وړېده هغه بیا لوژیکي رنګ لري او هم زما په نظر دپیل دخبرو
په پای کې دهدف څرګند یا ښه نه ده څرګنده خو په صورت
دکلام او ثباتي اسنادو را وړل یې پر ځای لیکل سویدي دکتاب متن
ته که ولاړ سو هلته هم لیکني ښې را غلي دي لنډۍ په زړه پوري او
دتوجه وړ دي په نثري لیکنه کې بیا دپیل دخبرو سره یو تکراري
بحث لیدل کېږي ، دا کتابګوتې لاندي لیکّ ي (( پاورقي )) هم په پوره
مهارت باندي لیکلي سویدي خو که چیري دځینو عامو کلیماتو یا

# پښتو منظومي کيسي لنډۍ او غاړي

لغاتو له تشريح څخه مخ اړونه سوې واي زما په نظر ښه به واي ځني
کلمې او لغات دا سي په کښې تشريح سويدي چي دهغو لغاتو او کليمو
مفهوم تقريباً هر چاته څر ګند دۍ دساري په توګه ((محيط)) خو په
هر صورت دا کتابګوټۍ يو معلوماتي او دادبياتو او که ووايو چي دپښتو
ژبي دزده کوونکو لپاره مرستيال او معلوماتي ماخذ کېداي سي ولي
چي په دې کتاب کي دپښتو ژبي په اړوند ډېر څه په لنډ ـ لنډ صورت را
اخيستل سويدي که سړي ددې کتاب هره برخه يا ځانګه ښه
وڅېړي ګمان کوم چي ښه سلامت غټ کتاب ځني جوړيداي سي
معني داچه په داکتابګوټي کي دپښتو ديني مذهبي ، اخلاقي ،
ګرامري ، فولکلوري ادب او نوري څانګي داسي په کښې اوډل سويدي
لکه په يوه وړوکي باغچه کي چي رنګارنګ ګلونه ټومبل سويوي زه
دښاغلي ((خارنوال)) صاحب درنښت کوم لوي خداي ((ج)) دي يې
فکر څېړ نيز او قلم دي يې ځواکمن ولري

په درنښت

دکندهار دپوهني رئيس

استاد حيات الله ((رفيقي)) کندهار نوي ښار کـ ۱۳۸۴

# يو څو خبرې

انسانان تل تر تله د نـورو نعماتـو پشـان دلـوي او واکمـن خـداي (ج) ددې نعمـت پـورورې دي را سي چـي پـه لنـډول حساب پر وکو او احساس کړو چي دخبرو پر وخت ږغ احساسوو ، دهغه په توليد ځان او بل پوهولاي سو ، دخاموشۍ سکوت پـه ماتوو مگر دتوليد پر وخت يې هيڅ داسي شي په سترگو نه وينو چي له خـولې مـو را وزي او هغـه دي دمتقابـل کـس وغـوږو تـه ننوزي ،نه هيڅ مونه تر سترگو کېږي خو په اورېدو يې هـر څـه احساسوو .

ايا دا به ديوه عاقل او بالغ انسـان لپـاره عجبـه نـوي چـي ددې کلام په توليد ځان پوه کړي او ځانته ددې قناعت ور کـړي چي ژبه څه او خبرې څه معني لري ؟ که يو انسان پر دې خبـره فکر وکړي چي ددې تخليق چا کړي دچا لخوا يې صورت نيـولي او ولي په وجود راغلي؟؟؟ نو بيـا بـه ورتـه ښکاره سي چـي ددې نعمت لپاره خاماخا يو خالق مطلق سته چـي هغـه خـداي (ج)

دي اما زما په نظر لاتر اوسه لـه ډېـرو انسـانانو سره دا سي څـه اندېښنه نسته ،او که پیدا سي نو به کله هم انسـان ددې نعمـت په مثبتي کاروني کي صرفه ونه کړي او تل به یـې لـه چتېـاتو را وګرځوي

دکلام دترسره کولوپه نیت وپورته خبرو ته په اشاره کـه مـوږ ځانونه پوه کړو نو ډېر داسي څه سته چـي مـوږ ددې وسـیلې پـه مرسته دخداي دلورینو تر پړاو ه ځانونه ور سوو

را ځو ددې کتاب دلیکنـي ومحور ته چـي دپورتـه لمړنـۍ منقولې په تائید دهر اولس او هر قـام لپـاره خپلـه ژبـه کـافي او شافي ده دهغه ملت دفهموني وسـیله ده ، هـر ملـت دخـبرو پـه کولو او دخپل فرهنګ په درلودلو ژوندي دي که یو ملت ژبه ونـه لري ، یو ملت خپل ځانګړي فرهنګ ونه لري او یو ملت خپلـواك لیك دود ونه لري دا به دا معنـي ور کوي چي هغه ملت مړ ملت دي او دمړه ملت هر څه پر مړو حساب دي راغلو دخپل هیـواد دملي وثیقې ((پښتو ژبي )) وموجودیت ته دا هغه وثیقه ده چـي تل زموږ ملي حیثیت او سیمیز غرور پـه سـاتلي دي سره تـر دي

چې دشپېړو اوو امپراطوريو او په هغوی پوري د اړوندوفرهنګونو ګذارونه يې خوړلي دي ، سره تر
دې چې  په غېږه کي يې نوي توکي ننوتي ، سره تر دې چې له خپلو بچو څخه په يو او بل نامه پردۍ سوېده بيا يې هم خپل تاريخي قدامت ژوندي ساتلي دي ، بيا يې هم دخپل قلمرو څخه دباندي دخپلي ساحې ساتنه کړې ، بيا يې هم خپلو بچوته  خپل ګړدود او لهجه ژوندي ساتلي او دا سي نور يې دخپل ځان درفا او دبچيو دفرهنګي ساتني لپاره تر سره کړيدي چې ددې درنو له ټولوالي  (( دښاغلي حبيب الله رفيع اوپرو فيسور سيال کاکړ )) ريسرچونه او پلټني دفرهنګ په منظوم  اړخ کي په ځانګړي ډول دپښتو فرهنګ دلنډيو او غاړو په اړوند يې دياودوني وړ بللاي سو او تر دوي را وروسته  په ځوانانو ليکوالو کښي دځوان  ليکوال محمد صادق (( ژړك )) زيار به دستايني وړ وي چې د پښتوپه  فولکلوريك چوکاټ کښي يې  دلنډيو په اړخ کي کړي  او يايې شايد او س په پلان کي وي خو په ټوليز ډول اوس هم په دې مورنۍ ژبه ګړېږو   ددې په

مرسته دژوند سببونو ته دمور او پلار په شېرینو نومونو او دهغوي زوکړو ته د((ورونو او خویندو)) په نومونو در ناوي کوو سربېره تر دې چې ځینو زامنو یې دشتمنۍ په لاسته را وړلو سره دخرڅلاو تر پولوځانونه رسولې ځیني یې دا سي زامن هم پیدا کړي چې دخپلي کم علمۍ پر چم یې ددې ژبې دنوښت لپاره نوي څه له خپل ځانه په وجود را وړي او هغو ته یې دزاړه فرهنګ

نومونه ورکړي چې یوازي یې پښتو نه ده سپکه کړې بلکه په ځانونو یې هم رخشند وهلې دي ځیني یې دحبیبي غوندي بچي دتاریخ په اوږدوکي درلودلي چه نه یوازي یې ددې ژبې په راژوندي کولوکي وربښتان سپین کړي بلکه ددې مورنۍ او پلارنۍ ژبې دژوندي ساتلولپاره یې دخپل ژوندانه شپې ددې ډېوې تېل ګرځولي دي اوداسي نوردېر ستريپوهان موږددې ډګرپه غولي کي اتلان یاداوبللاي سو

درنو لوستوالو !

دا کتاب چې دیوه دیني پوه ، عالم او په حکومتي چارو

کښبي ديـوه وارد کارمنـد ښـاغلي څـارنوال صـاحب منگـل احمـد
خان په زيار او هڅه   ليکل سوي  دپښتو پانگي  يوه بلـه زياتونـه
يې بللاي سو ددې کتاب ليکنـه دښـاغلي ليکـوال علاقـه ښـوي
چي څومره يې له خپلي مورنۍ ژبې سره لري .
دلته نومورې دپښتو لنډۍ را بيان کړي او هغه يې  زموږ تر
گوتو را رسـولي دي نومـوړي پـه خپـل دې اثـر کي لـه بـل نوعـه
نوښت څخه کار اخيستي هغه دا چي  لمړي د((الف او بـا )) پـر
رديف دپښتو لنډيو يا دونه کړې او بيا دهغه تـورو پـه پيـل سره دا
لنډۍ پيل کړي چي دپښتو او فارسي تر منځ گډ تـوري دي  بيـا
يــې په پښـتو ځـانگړو تـورو دهغـو پيلامـه کـړې ده چـي تـر دې
وړاندي  نوموړي بيا کاکړۍ غاړي چي ديو نـيم ليکوالـو تـر مـنځ
وخت نا وخت پر ناندرۍ هم وي
را ښکاره کړي او هغوي يې په خپل اصلي نوم  نومولي دي
تر دې وړاندي چي دپښـتو ژبې دلنډيولـه اړخـه يـې بيـان کـړي
ددې ترڅنگ هغه په خپلو لنډيوکي دخورا ښه انتخاب څرك بلل
کېداي سي چي

دهغــو لنــډیو پــه غــوره والي کې یـــې دا سي تــاریخي یادښتونه بیان کړي چي یوخت دتاریخي پېښو نښې ځیني مرا دېرې اوداسي نور چي کېداي سي څني مؤریخین یې یـو وخـت دیادو سو ټکو او پېښو له یادښتونو څخه کار واخلي

دلنـډیو او غـاړو تـر فـورم چـي را کښـته سـو نوبیـا نومـوړي دپښتني فرهنگ پخواني فولکلوریك داسـتانونه پـه ډېـر ماهرانـه ډول دماشومانو په ژبه بیان کړي تـر څـو ټـول ماشـومان وکـولاي سي ښېله کومي کجۍ او پېچۍ سره یې ولولي لکه یو ځاي چي نوموړي خپل زوي محمد امین ته وایي

((یـــــوه خـــــو ملگـــــري ده
بـــــل زمـــــا مردانگـــــي ده
داغـــــه زمـــــا ځـــــواني ده
خبري سره سم مرد سو لـه آسـه را شـوه
تـــه نـــو ښـــه ــــــ ښـــه یـــادوه
شـــــــــــــــــــــــه !))

چي داد نظم په چوکـاټ کښـي مـوږ او تـاسي یـو نوښـت

بلـلاي سـو ولوكـه دنومـوړي تـر مخـه دسـيمي او اولـس درانـه فورلكلوريست

خداي بخښـلي محمـد گـل (( نـوري)) پـه منثـور چوكـاټ كښي د(( ملي هنداري)) غوندي اثر پښتو ته وړاندي كړي چـي خپله څارنوال صاحب يو ځاي اشاره ور ته كوي

لكـه محمـد گـل ((نـوري))

پـــه ټـــبر چـــي ۇ خيشـــكي

او ليكنـــــه يــــي مـــــلي ؞

دمرد نامرد پشاني نـور نقلونـه يـې

خـــــــــــــــــــــــواړه

تـــه نـــو ښـــه ــــ ښـــه يـــادوه

شه !

او يا په موجوده عصركي نوښتگر شاعر (( واصل حسن يـار )) او يـا تانـد شـاعر حيـات اللـه ((څـرك)) چـي پـه رومـانتيكو خيـالونوسره يـې ښـه پښـتو منظـوم داسـتانونه لـيكلي داچـي دخپلي مورنۍ ژبي دپياوړ تيا لپـاره زمـوږ درانـه ليكـوال ښـاغلي

څارنوال صاحب  په دې لیکنـه کي را غونـډ کړي  کـه مـوږ وګـورو ډېر داسي نور پیغامونه به په کښــي پـټ وي  چـي مـوږ ډېـر څـه څني تر لاسه کړو خو په څنو ځایونوکي  دښه وضـاحت لپـاره مـا ((قرانمل)) ټول لمـن لیکونـه راوړي دي  تـر هغـه ځایـه چـي مـا معلومـات در لـودلي دي هغـه تـه وضـاحت ور کـول سـویدي  او فهمـوني لپـاره یـې دټـکي((.)) څخـه کـار اخیســتل سـویدي او چیري چي خپله دلیکوال لخوا کوم ځاي په

نښه سـوي  هغـه ددې کتـاب پـه لیکـو کښــي دسـتوري او سـپوږمي پـه نښـه یـادول سـویدي تـر دې وړانـدي  ددې کتـاب دلیکوال په ځانګړې  اجازه زما قرانمل لـه اړخـه  ددې کتـاب لـه اصلي متن څخه څني مغیارتونه پـه وجـود راغـلي چـي دوس تـر برید یې دمتن په روانـوالي کي اسـاني را وسـتل سـویده کیـداي سي چي نور درانه لیکوال هم نوري ملاحظې ولري خو دا به هغو ته پرېږدو سره تر دې دکندهار دپوهني درانه رئیس استاد حیات الله (( رفیقي)) هم په خپله لیکنه کښــي څنـو ځـایونو تـه اشـاره کړېده چي پر ځاي خبره بلل کېږي

ددې لیکنـــې پـــه پـــای کې وایـــم چـــې ددرانـــه ســـپینږرې
څارونوال صاحب قلم دې نور هم ګړندې وي فکـر دې دې معنـاً
سپین ږرې واوسې تن  او قلم دې یې ځوان وي
آمین

په درنښت

د کندهار د معارف د مجلې  عمومي مدیر
نوراحمد ((قران مل))
غریبك کتابتون
جدي (۱۰) شپه ۱۳۸۴ لمریز کال

# د کتاب د متن دوې لاسي لیکنې

پسل په خوله یا په زړه کړي

یا په تحریر کوره سوال عنکبې مینه

ژبه یوه تره تیه غوښته ده چه د انسان په بد ناکۍ د مجبود لپاره د خپلو
اترو بوخت کې یوه ښه وسیله ده چه الله جل جلاله انسان
ته د کمال او نیک رغبت او جوړښت په منظور عنایت کړیدي
لوی خدای قادر لایزال ذات په خپل اسماني کتاب کې د تقویم
ارشاد او هدایت فرمایلی دی: «لقد خلقنا الانسان في احسن تقويم»
نقل کوي او وايي:
چه د امام اعظم رحمة الله علیه په عصر کې د یوه مقتدر او رئیس
شخص له خولې څخه داسې مضمون صادر شوی وو چه له زما ښځه
یعنې ماندینه تر سپوږمۍ ښائسته نه وه نو دې پر دغه شخص
طلاقه وي.
نو ځکه چه دغه مقتدر او رئیس شخص متوجه شو چه اول خو
سپوږمۍ ډېره لوړه او لیرې ده د سپوږمۍ او د نورو مقتدر
شخص د ښځې د ښائست اندازه په کوم معیار او ترازو معلومه کړي
نو ځکه د علماء فتوی او حکمت ته رجوع وکړله او خپله قصه ئې باګل
په مفصل ډول ورته وړاندې کړله -
نو ډیرو علماء او دوخت د ذوالحکما او د فتوی خاوندانو دغه
سړي ته وویل چه ستا دغه ښځه طلاقه شوې ده.
پدې د طلاق په قضیه امام ابو حنیفه رح خبر شو او حکم ئې
وغوښتل شو نو امام اعظم صاحب ورته وویل چه الله جل جلاله
تر ټولو مخلوقاتو انسان مشرف او ښائسته تر او ښکلو تر خلق کړیدی
ځکه چه الله تعالی په خپل اسماني کتاب قرآن عظیم الشان کې لقد ... في احسن تقويم

## دليکوال خبري

پيل په خوله يا په زړه کيږی

ياپه تحريرگوره سوالونکې• مينه•

ژبه يوه ټوټه غوښه ده چی د انسان په بدن کي د بهبود لپاره دخبرو اترو په وخت کي يوه ښه وسيله ده چی الله جل جلاله انسان ته دا کمال او نيك رغښت او جوړښت په منظور عنايت کړيده لوی خدای قادرلايزال ذات په خپل اسمانی کتاب کي داسي

---

• کې ((کړې ))

• له پورته بيت څخه مراد ((بسم الله الرحمن الرحيم )) ويل دي دليکوال په نظر حتمي نه ده چي پرکاغذه به ديو شي په سرکي ((بسم الله ......)) ليکل کيږي بلکه په خوله ويل يې هم په هر پيل کي دليکني ثواب لري بله خبره داده چي ځني وختونه کاغذونه پر امبارو او نور کثافاتو لويږي نو ښه به دا وي چي دوس تر بريده يې پر ونه ليکو خو اړينه ده چي دهري روا ويني او ليکني په سر کي يې ولولو



ليکوال: څارنوال منګل احمد خان

ارشاد او هدایت فرمایلی دی ((لقد خلقنـا الانسـان فی احسن تقویم))

نقل کوی او وایی:

چی د امام اعظم رحمة الله علیه په عصرکي دیـوه مقتدر او رئیس شخص له خولې څخـه داسي مضـمون صادر سوی ؤ چی که زما ښځه (( ماندینه)) ترسپوږمی ښایسته نه وه نودي پر دغه• شخص طلاقه وی .

ځرنگه چی دغه مقتـدر او رئـیس شـخص متوجـه سـو چـی اول خـو سـپوږمی ډیـره لـوړه او لـیری ده د سپوږمی اودنوموړی مقتدر شخص د ښځی دښائیست اندازه به په کوم معیار او ترازو معلومیږی نویې د علـماء فتوای او حکم تـه یـې رجـوع وکړلـه او خپلـه قصـه ئـې

• ((دغه )) متکلم سړي څوك چي له امام اعظم ((رح)) سره په خبرو بوخـت دي خپل ځان ښو ي یعني ((پر مادي .......)) وي

بالكل په مفصل ډول ورته وړاندي كړله . ،ډيرو علماؤ اودوخت ذوالحكماؤ• دفتوی خاوندانو دغه سړی ته وويل چی : پر تا باندی دغه ښځه طلاقه سوی ده .

ددې سړي دطلاق په قضيه امام ابوحنيفه (رح) خبر سو او حكم ځنی وغوښتل سو نو امام اعظم صاحب ورته وويل :چی الله جل جلاله تر نورو مخلوقاتو انسان مشرف او ښائيسته تر او نيكو تر خلق كړيدی ځكه چی الله تعالی په خپل اسمانی كتاب قرآن عظيم كي د((ا حسن تقويم ))

په كلماتو ستايلی دی نو ستا ښځه پر تانه ده طلاقه .

• ذوالحكما يعني دحكم او امر څښتنان

په هرحال د انسان هرغړى بلکه هرجز د بدن يې دښه اکمال او ښه جوړښت لپاه شکلاً اوترکيباً پيداکړى دى اود هر غړى وظيفه معلومه ده مثلاً ژبه که د افهام او تفهيم وسيله ده خو دانسان دذايقې قوه هم ده چې اکثره انسانان يې طبعتًا له محيط• او ماحول څخه زده کوى چې خبرى اترى يې ورسره کيږى مثلاً لکه دکور او کلى او ګاونډيانو سره چې ډيره راسه او درسه او راکړه ورکړه وى خو ،په علمى سطح علماء دژبى کلمات يعنى هغه اصوات ((ژغونه)) •په منظم ډول له حرفو او توروڅخه اسنباط کړى دى او

• محيط ((چاپېريال )) ماحول (( را چاپېر سوي ځاي ))

• ((ژغونه )) دښاغلي ليکوال په خطي ليکنه دسيميزي لهجې په استعمال سره ژغونه ليکلي سوي خو موږ او تاسي يې په معياري انداز کي د((ږغونه)) په مفهوم کاروو

هره ژبه جلا ـــ جلا لهجې لري چې ځیني توری یې هم خاص او ځینی یې مشترك توری دی خو زموږ په وطن افغانستان کې په مذهبی لحاظ دعربیت استعمال تر نورو ژبو ډیر دی ځکه یې توری په پښتو او دری خبرو ، اترو کې ګډ سویدی .

د عربی ژبی توری له الف څخه بیا تر((ی ))پوری ۲۸ دی او د دري ژبی توری چې مشترك هم ورته ویلای سو ۴ دی لکه (ژ،چ،ګ،پ،) اود پښتو ژبی توری ۸ دی لکه (څ، ځ،ړ،ډ،ږ،ښ،ڼ) دغه پورته یاد سوی توری په اصلی کتابی عربی اصطلاح کې نسته ځکه •چې دغه توری په عجمی ژبه کې وضع وه او

• ذکر سوي توري نه یوازي داچې په عربي کي نسته بلکه په عبراني او سمریاني ژبو کي هم نسته ددې ژبو زیاته کارونه په اریایې لهجو کي زیاته ده چي له پښتو پرته په نورو اریایي ژبو کي په فردي ډول یو یا دوه توري کارول

دی اودغه مشترك توری په پښتو او دری ژبوکي دخبرو او اترو په وخت کي

استعماليږی مثلاً(( ژ)) په پښتو کي چی په ژبه کي چی کي کارول کيږي اوپه دری کي چی پنج کتاب يو وتلي

کتاب دي ((ژ)) يې د ژاژ په غزل کي راځي او ((چ)) په پښتو کي چی د چرګ يا چرګی په نامه کي راځی خو په فارسي کي موږ نور ډېر توري کارولاي او ليدلاي سو چي د((چ)) توري په کښې کارول سويدي او داسي نور ..........

---

سوي وي خو په پښتو کښې دا ذکر سوي اته توري ټوله موجود دي دپورته اتو تورو ټولنيز ه کارونه پر دې ګواهي ور کوي چي دنورو اريايي ژبو په پر تله پښتو ډېر قدامت لري او دنومورړو تورو دټوليز استعمال له وجهي دنورو اريايي ژبو مور بلل کيږي .

د پښتو په ځینو سیمو کې د(( ږ ))توری د ((ګ))
په توری بدلیږی لکه ((مږیا مېږه)) چې په(( مګ یا
مېګه ))یې یادوی هکذا یعنی دغه رنګه د((ښ ))توری
د ((خ)) په توری بدلیږی لکه ګامېښه چې په((
میخه)) یادوی او داسې نور.

او دپښتنو په ځینو سیمو کې د((ږ ))توري
د((ګ)) په توري بدلېږي لکه ((مېږه)) چې دځنو
سیمو خلګ یې په ((مېګه )) وایې او داسې نور دپښتو
دغه پانګه دپښتوادب په اړوند لنډیو کې داسې کارول
کېږي :

## د پښتو دغه شعري پانګه د عربي الفبا په ترتیب

اول مـــې هـــم بللـــې خدایـــه !
اوس به دې بولم چې جانان په سفرځینه

بيـــا بـــه دي نـــوم پـــر خولـــه وانخلـــم
تـــه مـــاتوې دملنګـــانو کچکولونـــه

تـــوري وهـــه بـــري بـــه مـــومې
که بري نه وي ځوانان تل په تورو مرينـه

ثـــواب دي هلتـــه حاصـــليږي
چي لـه غازيـانو سره سـاتې سـنګرونه ☪

جنـــت دهغـــه چـــا پـــه برخـــه
چي ترازو يې دحساب پـه نـيکي سينه☪

حـــب الـــوطن لـــه ايمـــان بويـــه

---

☪ دا نښه وهغو لنډيو ته اينبودل سوېده چي ددې کتاب ليکوال له خپلـه ځانه پـه مخکي وختونـو کي لـيکلي دي او دې لـنډيو دا ګتـه کړې ده چـي د((الف او با )) تر تيب يې پوره کړيدي سره تر دې چـي نـوري داسي لنـډۍ به هم وي چي په سر کي يې ((ث ، چ او...... )) وي

ځکه مو کـړې پـر هيـواد دي جهادونـه☪

خاونـــــده بيـــا دي پسرـــــلي کــــړ

لــه وچــو دښــتو دګلانــو بــوي را ځينــه

دګـــل ګـــردان• پشـــان کـــږه ســـوې

سي• را سمبړي نيمي عمر بـه مـي وينـه

ذاکـــــر انســـان داللــــه خـــوښ دي

بـــې ذکـره خلـګ غـافلينو کې را ځينـه

ربابـــــه خـــــومره بختـــــور يـــــې

---

• (( ګل ګردان )) ګل افتاب پرست يا لمر ګلئ هغه ګل چې دلمر په حرکت سره خپل ځان کږ وي

• ((سي )) چې

زما لالي دي همېشه په غبېږ کي ژدینه •
زه چـــي ســـهار لـــه خوبـــه پـــا څـــم
لمـــړي ســـلام وکبریـــا ذات تـــه کومـــه ☪
سي پـــه ســـلام مـــي خوشـــحالېږي
پـــر هغـــو وایـــم پـــه زرګونـــو ســـلامونه
شـــفق یـــې مـــه بـــولي عالمـــه
اســـمان زمـــا پـــه ژړا ونیـــول ګردونـــه
صـــبا بـــه بیـــا کـــډي بـــارېږي
ددښـــت ښـــکلا بـــه ســـتا لمنـــي بویوینـــه
ضرب الحبیـــب• ګـــوره ذبیـــب دي ☪

---

• (( ژدینـــــــــــه )) ایږدینـــــــــــه

• ((ضرب الحبیب )) ددوست وهل

داکښلي پندي دي هوښیاران يې خوښوینه
طوفـــان کـــه هـــر څـــومره ډېرېـــږي
زمـا دیـار تـر غمـو لـړ دي طوفانونـه
ظـــــاهراً ناســـــت دي ولیـــــدلم
پـه حقیقت کې لـه جانانـه سره یمـه ☪
عبـــث خـــواري را پسيـــ مکـــړه
دانځـر ګـل یـم پـه لاس نـه درځـم مینـه
غمونـــه خـــوره غمخـــور مـــې نســـته
لکـه چنـار پـه تـن مـې اور ولګېدنـه
فـــاني دنیـــا ده بـــې بقـــا ده

---

هغـه پښـتو متـل دي چـي وايـي(( دوسـت بـه دي وژړوي ، دښـمن بـه دي وخندوي ))

هوښـياران خلـګ دعقبـي ګټـي کوينـه
قـــبر يـــې ښـــه جـــوړ کي يــــارانو
مـومن پـردېس دي پـه کښـي تېربـه کـړي
کلونـه کـه تښـتم تښـتم نـه خلاصـېږم
نصـيب مـي سـيوري دبـدن را سره ځينـه
لکـــــه دمـــــچ منګـــــولي مـــــرووړم
بېلتــون يېلــې• جانــان نــه پخــلا کېدنــه
مـــا ول لـــه غمـــه بـــه دي مـــړ سـم
مرګ په وعده دي درواغجنـه سـوم مينـه
نـــن مـــي جانـــان ليـــدلي نـــه دي
لکـه سـپين بـاز لـوړي ژوري لټومـه
وطـــن خـــو ځکـــه پرمـــا ګـــران دي

• ((يېلي دي )) دلي دي

مړي دمور او پلار وطـن خـاورو لـه ځينـه
هغـــه ســـاعت بـــه دي راحـــت وي
چـــي دخلوروســـترگو وسي ديدنونـــه
يـــاره پـــردې بـــې فيصـــله كـــړو
خداي دي کامياب کړي داسپېڅلي ســنگرونه

**هغه لنډۍ چي د پښتو توري يې په سرکي دي**

ټگـــــى دى وكــــړه ټگـــــه يـــــاره
ســتا دټگـﻰ كاغـذ پـه جيـب كـي گرځومـه
ثنگـــه پـــر ثنـــگ گرځـــې اشـــنايه!
مطلـب دى څـه دى راتـه ووايـه حالونـه
څـــان سره پـــام كـــوه جانانـــه
ژونـد ون فـاني دي نيمـه خوانسـې مينـه

ډبـــــــرې مــــــه ولـــــه شریکـــــــه
مـــادې دخونـــدو منتونـــه وړې دینـــه
ړنـــدې مـــې ســـترګې ور پســـې وې
بـس پـه را تلـوېې بیرتـه روغـه سـوم عالمـه
ړو دخپـــــل ځـــــان ســـــاتنه وکـــــړه
جنـګ دتوپـو د چـې ضـایع نسـې مینـه
ښـــه ســـو چـــې روغ راغلـــې جانانـــه
مـا دی پـه سر اللـه تـه کـړې وه سـوالونه
ښکـــــې لیـــــا خـــــام دی پـــــر ویریـــــږم
الله سې ځوان• سې دلښکر تر مخ به ځینه

## اصلي خبره

---

• الله سې ځوان سې (( الله چې ځوان سې ))

راغلو اصلي خبرو ته چي دلنډیو یادېدنه ده دلنډیو یا ټپو یا مصریو کره او یقینی تاریخ نه دی معلوم چی اول وار کوم ادیب ویلی او کومه لنډۍیا مصرۍ ده او په کومه نېټه یې ویلې ده لکه چی اولین د مناجات په هکله مؤریخینو دبیټ نیکه ددې مناجات په باب لیکنی کړیدی

: لویه خدایه لویه خدایه

داوګړی ډېر کړې خدایه

دپښتو لنډیو په هکله یوازی او یوازی دومره ویلای سم چی تقریباًدیرش کاله پخوا زه دبلخ په ولایت ، مزار شریف کي د باختر په لېسه کي ښوونکي وم په یوه لیك کي ددې لاندي مصرۍ تاریخ زر کلن لیکل سویؤ

که د خالو لښکری راغلې

زه به ګومل ته په سلام مخ له ورځمه

نوداخو دیرش کاله پخوا  ما لیدلی ؤ چې تاریخ یې زرکلن ؤ اوترهغه دمخه به څونی وخت وړاندی لیکل سوی او څومره وخت له مخه به ویل سوی وی ؟ مطلب داچی بالکل قدامت یې ثابتیږی ، دلنډیو یا مصریو یا ټپو د شعر تاثیرات اود مقصد ترلاس کیدل او استفاده ځینی کیدل تر نورو شعرونو ژر او ښه کیږی ، لنډۍ دیوه قسم مار نوم هم دی چی دا مار نسبتًا نوروته د ژر او لنډ ډول معنی ورکوی معنوی تاثیرات یې نسبتًا ډیردی بل شعریزي لنډۍ دي چې لمړۍ برخه (۹) سېلابه او دوهمه برخه یې (۱۳ ) سېلابه کیږی چی په پښتو یې اصلی مصرۍ بولی نو په ذوق او خوند کې دا شعر له نباتو یعنی له مصرـیوسره شباهت لري ، اود یو ډول پیش قبضی۔ ((چاړې)) نوم هم د ي چي د(مصرۍ چاړې)) په نامه یادیږی او ټپه

هغه شعر ته ویلای سو په تاثیر کې شباهت ورسره لري ، یعنی لکه یو زخم ((ټپ)) چی پیښیږی دا شعر هم تامل تدبر دټپ پیښولاي سي د پښتو په باب کې دغور د غښتلی ((غورغشت)) اولاده چی په کاکړانو مشهور دی دا قوم ځنی مشخصات لري چی یو له هغو څخه هم د ادب په ډګر کې یوډول مشخصه شعری پانګه لري چی ورته کاکړی غاړی وایی ددې شعرتاریخچه هم له اولي غاړي په لیکلی طور په لاس نه ده راغلې چی په کوم تاریخ اود کوم ادیب له خوا په کومه موضوع کې ویل سویده یوازی او یوازی دومره ویلای سو چی د کاکړو په طایفه کې اول وار ویل سویده ممکن بیا به نورو هم استفاده ځنی کړې وی داچی کاکړی غاړی یې بولی دا مطلب ثابته وی چی دا شعری ادب خاص له کاکړانو څخه پیل اود کاکړو په

قوم پورې تعلق لري لکه چې وايې:

کاکړې غاړې ليا•ښې دې
رنګارنګ ټپې پکښې دې
کاکړې غاړې لياښې دي
رنګارنګ ټکي پکښې دي

## کاکړی غاړي

کاکړې غاړې دالف او بې په مصرد والې داسې ليکل کيږې

اول حمد دپاك الله
درود سلام پر مصطفی
بيا سلام پر اصحابانو

• ((ليا )) په معياري پښتو کې په (( لا )) کارول کيږي
لکه دئ ليا نه دي راغلي ؟
((دئ لا نه دي را غلئ ))

## هــــم پــــر ټولــــو مؤمنــــانو

توبــــه بــــس دخــــداي لــــه زوره
نــــه ور ځــــم بــــې ســــدو وروره
ثوابونــــــه ډيــــــر لــــــري
و حــــاجي لــــه چــــي څــــوك ځــــي
جرمنــــــى نــــــه چليــــــده•
پــــه لاس د ســــپين قــــدم جــــان وه

• تاريخي خبره ده چي کله دوهمه نړواله جګړه وموښته نو وايي ځيني جرمنيان له شاخوا سيمي څخه ږوب ته راغلل او له ځانونو سره چي يې کوم ټوپکان را وړل هغه ددې يې سيمي ځوانانو ته ور کړل او بيا به دږوب دسيمي ځوانانو دجګړې پر مهال کار ځيني اخيسته چي دلته په پورته غاړه کي هم مراد له جرمني څخه هغه جرمني توپکان دي

حمـــد بـــه وايـــو دســـبحان
لـــه غـــزا روغ راغـــی زمـــا گـــران
خـــبر نـــه یاســـت زمـــوږ لـــه زړو
پـــر ســـید خیـــل کـــاږی پـــاتو
دکـــاکړو نـــوم یـــی ښـــه کـــي
نـــازك خـــوی د غـــزا وکـــي
ذاکـــران پـــه یـــاد دخـــدای دی
ټولـه پـر کـور یـا پـر بـل ځـای دی
رابـــــــه سي زماجانـــــــان
ســـور کانـــدی گـــلان• دبیابـــان
زه درځـــم نیـــت مَدغـــه دی•
دیـــد دخـــدای پـــه اراده دی

•((سوي )) سو
• مدَغه دي (( مي دغه دي ))

# پښتو منظومي کیسې لنډۍ او غاړي

ســــتا کاپونــــه ښــــه لګیـــــږی
زیــاتی ځــم لمــونځ قضــا کیـــږی
شــــهزاده سي ګوربنـــــده کــــــي
کـــړو اوس بَـَدَه څـــوك وکــــي •
((صــوفي جــان نــن کاغـذ راکــي
• ژوب هیــواد یــې پیـاد زمـا کــي))
ضرور نه دی نوری چاری

---

• بده ((به دي ))

• هیواد چي امیرکروړ جهان پهلوان له سرِ کال ښخه نـژدې ۱۲۸۳یـا ۱۲۸۵ لمریز کال تر مخه په خپل حماسي شعر کي د((ایواد)) په نوم را وړي دخلګـو داستوګني سیمي ته ویل کېږي یا په بل عبارت وطـن تـه ویـل کېـږي خـو پـه موجوده وختونو کي هغې سیمي ته ویـل کېـږي چـي دیـوې سـیمي مځکنـي بشپړتیا تامینوي او دجیو پولیټك موقعیت پر بنـسټ ځانته سـیاسي اسـتقلال او منظم دولتي سیستم ولري هیواد په عربي مملکت ، په فارسي کشور او پـه انګلیسي کانټري بلل کېږي



لیکوال: څارنوال منګل احمد خان

ســتا نيکــه پــروت دی بــې ســاري
طالبــــانٌ گنــــده کــــوي •
دَ گــران بـــې تــول سي راځـــی
ظلــــم مکـــوه پرځــــان
د ظـــالم ځـــای دي پـــر نـــيران•
عـــلی ســـتا گـــدا بـــه وکـــم•
زمـــا ســـوگند دی کـــه يـــې وکـــم
غازيـــان ډيـــر دی جنـــگ بـــه وسي

---

ٌ له طالبانو مراد هغه ځوانان دي چي پخـوا بـه پـه مسجدونو کي پـر ملايـانو استېدل او ديني سبقان به يې پر ويل
• گنده ، گانده دپښتو ژبي يو ه اصـلي کليمـه ده چـي پـه موجـوده پښـتو کښې دسبا ورځي په معني ده او سـبا دعـربي ژبي لـه صـباح څخـه اخيسـتل سوي کليمه ده چي اوس دډېر استعمال له رويه په ((سبا )) مفغنه ښکاري
• نيران په عربي کښې ددوږخ وشېلي ته وايي
• کم (( کړم ))

غــورکم حســن خــان نــه سي

فــانی پــت فــتح کــوي

احمــد خــان اوغــان نــامي•

قــول وکــي بیــا رانــه سي

گــوره پــت پــاللای نــه سي

کــه رائــی نــازك دی راسي

پــه شــپو ځنــډ ثلــه کښېباســې

لیابــه لاس پــه جیــب کــي کښَــږدم•

لیــا بــه گــڼ ترکســتان پــرَږدم

میمــی٠ ټــول کــه خپــل هلکــان

---

- او غان ((افغان ))
- کښږدم (( کښېږدم ))

پرږدم (( پرېږدم ))

٠ ((میمــي)) دبرطــانوي امپراطــورۍ پــر مهــال چــي کلــه دپښــتونخوا او ږوب سیمه دانگلېسي قواوو په لاس کي وه نو دلته چــي بــه کــوم انگلیسيـ واکــدار

دوومکـــار تـــوس ورکـــي شـــيرجان
نـــازك ځـــی ارمـــان يـــې ډېـــر دی
يـــای لـــه غمـــو ســـير دي• ســـنځر•
دوليـــــــــــد اوشـــــــــــيرك واری
سي مېخـــــــتر وكـــــــينښ دو واری
هرځـــــه دی دخـــــدای پـــــه كـــــړه
لـــــه گرانـــــه بـــــد نـــــه دی زمـــا زړه
يـــــــو وار ژركـــــــــوم تگونـــــــــه

---

راتله او له هغه سره به خپله خانمه ملگرې وه دانگلېسې دغې خانمې يا ((خارجې)) ښځې ته به ددې سيمو خلگو ميمه ويل په پورته غاړه كې دالنډۍ بيان سوېده دا جوته وي چې دا لنډۍ هم دهمغه انگليسي- امپراطورۍ په وخت كې ويل سوېده

• ياي ، يايي ((وايي ))

•سنځرچي اصلي نوم يې ((سران نيكه )) په ږوب كې دكاكړانو يو نيكه ؤ او دوولس زامن يې در لودل

بيـــا نصـــيب كـــوى كارونـــه

## كاكړى دپښتو د مخصوصو تورو په مصدروالي سره

تېـــالى تېـــال راتـــم كـــه

پـــه ديـــدار مـــورك مـــاتم كـــه

څـــاڅكي شروع ســـول تنـــا• راغلـــه

گـــران د را زركـــي سي لباغـــه

ځگرمـــــه ښـــــكاره كـــــوه

پـــه حيـــا څپـــل ژونـــدون كـــوه

ړنـــده پـــه ســـترگو ســـې لـــه زړه

نـــازك وليـــاړ• تـــه تريـــده•

---

• تنا (( تنها )) يوازي

• ولياړ (( ولاړ )) ولاړ دتگ په معنې نه بلكه ددريدلي په معنې دي

• لړ په حيا ژوند كوه نازك ولاړ ۇ ته تېرېدلي

ډګرکـــي ســـيد لومـــه خـــبر دی
ما بـه خـدای جـوړ کـي لـه ګـولي
ښايســـــته صـــــفا غـــــوځي
تـــر کـــټ يــې کوزپراتـــه پــېکي
ټکتـــــو شـــــيلي شـــــيلې دي
ګــــران نـــوکر د رســـالې• دی
ځـــان بـــه کـــارکم پـــه پســـتې
يابـــه کـــوټ ورمـــه دمېلـــې
ړنګـــــــه درختــــــه ده د زړه
ښايســـتې ســـترګی دَ ليـــا• ســـته
ډانـــګ پـــه لاس بګـــر ځيـــدې

---

•(( رساله )) که په موجوده وختونو کي موږ دديوې خبرې رسنۍ لپاره کاروو خو دلته مطلب له يوه حکومتي ارګان څخه دي

• دَ ليا سته (( دي لا سته ))

اوس دي ځان خوښ دی که پالې•
دښایســـت گـــلان پیـــدا ســـول
مالدار ټول مخ پر صحراسول
ښکـــځ •ډیـــر ســـتړی ســـتومان دي
کـــور یـــې لـــوړ پـــر خراســـان دی

---

• (( پالې )) دړوب دسیمي یو سردار ؤ چـې دانگریزانـو پـه وخـت کي یـې تـر پایه وسله پر مځکه کښېنښوده پاي دهغه وخت دحکومت لخوا ونیـول سـو او بیا په دار وځړول سو دویاړ په یاد یې پاکستاني او هندي حکومتونو د(( پـالې شا )) او (( پالې خان )) په نوم دوه بېل بېل فلمونه جوړ کړي دي

• (( ښکځ )) نامراحق یا نابالغه هلك ته ویل کېږي چې مړاني نوي وهـلي پـه تېر کـال کي ددې نامـه دخـول دمطبوعـاتو وچوکـاټ تـه ددې لامـل سـوچې ځیني لیکوال دا توري په زښکي پوري وتـړي چـې دنـاصرو او سـلیمانخیلو پـه لهجو کي وځوان ته وایي او استد لال دا کوي چي له ((زښکي )) ثخـه ((ز)) دوخت په تېرېـدو لـیري سـوې او ((ښکـځ)) سـوي دي خـو خـبر داسي نـه ده هغوي ونابالغ یا نامراحق تـه ((زښـځ)) وایـي چـې د((ك)) حـرف هـیڅ نـه پـه کښې ښکاري او د((ښکي )) همساله بلل کېږي خـو هغـوي وبـالغ انسـان تـه ((زښکځ )) وایي چې دلته موږ او تاسي د((ښکځ)) او ((زښکځ)) یو له بله معناً

ښکــــي خپــــل مرغومـــان بیـــایی
تولــــه ورځ یـــی پردښـــت پیـــایی
ښکـــي نـــه راځـــی کهلــــه تــــه
ســـپینی پـــوځي خـــوري هلتـــه

## کاکړۍ غاړي د مشترکو تورو په مصدروالي

ژمـــی راغـــئ پــــه تیـــاره کـــي
ږمـــونځ وی بــــه گـــران ځـــوښکي
چمـــن ډیـــر لـــري متونـــه
دگـــران خـــږ پـــږ ســـول کوتونـــه
گـــاډی شـــنه دو دونـــه بـــاسي

---

، قیافۀ او رویتاً فرق سره کولاي سو وا معني چي په ((ښکي )) کي کـاف سـته او په (( زښي )) کي نسته دوهم دا چي ښکـئ نابـالغ هلـك تـه وایـي او زښکـئ وبالغ ته ویل کیږي چي په لمړي حالت کي یو ځاي دکاف نه موجودیت او په دوهم پړاو کښي دمعني مغایر ضدیت دنوموړو درنو نظر ردوي

ترکـــوړك او س نـــازك بـــاسي
پــــر شـــا بـــوره کـــاکړان دي
تـــور پټکـــي احمـــد خـــیلان دي•

## سوال او جواب په کاکړیو غاړو کي

### سوال:

((لمـــــــړی الســــــلام علــــــیکم☪
هیلـــــه منـــــد یـــــم دوعلـــــیکم
ســـیف الـــدین نـــن کاغـــذ راکـــي
هیـــواد ړوب یـــی پیـــاد زمـــاکي

---

• تر دې لنډې لاندي ښاغلي لیکوال لاندي جمله لیکي ((دری یمی خور آتمه دجمعی مبارکی ورځ د مولوی مهران په حضور کی د مهاجرت په حال کی خط لیکم که کډه وړه وی هم باك نلری ځکه چې د فریشانی حالت دی))او له ګډو تورو څخه مراد هغه ګډ توري دي چي دپښتو او دري منځ قرار لري

☪ دا غاړې چي په قوسینو کي نیول سویدي خپله ددې کتاب دلیکوال دفکر محصول بلل کیږي

پکې لیک وو دوه نومونه

چې ویل یې سلامونه

یو آدم د خراسان وی

بل حاجی ملاباران وی

آدم ول زړه مې راښه که

دکور حال راکه لالکه

**جواب**

دکور نلرم حالونه

پرلیار اوری بارانونه

حاجی ملایایی* زموږ هوا سي

ښارنوال دَیو وار راسي

چې زما دبد هوا سي

ټول دوستان به په خندا سي

---

*((یایي)) وایي

## جواب

زمـــا ځـــو چنـــده هـــوا ســـتاسي

چـــی را يـــاد گـــرانی دا ســـتا سي

ډيـــره ډيـــره ســـودا زمـــا سي

وتـــر بـــرو تـــه خواســـت كـــوم

كـــي مـــانی• ځـــود بـــه درځـــم

خواســـــت مَدغـــــه دی تربـــــرو

وگـــــوری حـــــال دي ديـــــارو

هغـــه ښـــه نښـــان ځـــه ســـوه

ښـــــه ده نيســـــتی د شـــــهزاده

تـــــر بدبختـــــه نارينـــــه

..ښـــه ده نيـــك بختـــه زنانـــه))•

---

• كي مانی (( كه يي منې))

• ددي كتاب پـه خطي نسخه ليكوال ددي لانـدي مصرىٍ اشـاره وبنگـل سردار ته كوي موږ نه پوهيږو چې بنگـل سردار ځوك دي كـه ژونـدوو پـه بلـه ځيږنه كي به دبنگل سردار په اړوند هم ځيړنه وسي

## منظومې کيسې

په یووخت تصمیم نیولې ؤ باښې
ټولولې یې له هر ځایه خاشې
ځالګې کې به یې یو ځای ایښووې
ځینې جوړه یې وځانته ځالګۍ کړه
داستوګنې یې یوه وړه خونګۍ (*) کړه
په شربلو یې هغه ځای کې هګۍ کړه
دهګیو یې تر سره کړل شر بل
یو په بله یې چیچیان کې (*) وایستل
چې چیچیان یې له ځالیه را وتل
پر ښاخو ددرختو ټول ټپرېدل
دغه ژوند او دبچیو لوېدل
باښه جانه به په دوې هوسېدل
یووه ورځ سوله تر سترګو د ګېدړې


لیکوال: څارنوال منګل احمد خان

ول ☪چې یوځای داچیچیان مې وای خوړلې
په یوه او بل چل ګوتې مې وای وړې
نو یې یوواري ناره کړل ((اې باښې)
زماجه خویو بچېځ دي چې دا ته به را کوې
که دا نه وکړې در کاږم دي ریښې
باښې هم ویل چې زه باید یوځه کړم
بس دا یو بچې به زه ور واچوم
او دانور بچې به ټول تري خلاصوم
نویې یو بچې ګیدو(☪) ته واچوی
ګیدو هم په ډېر تلوار وځغلاوی
په ګوښه کې☪ طبیعت په سماوی
پر باښې باندې نور جو ړیو لوی ماتم سو
ورپیاد چې دبچې دورځې غم سو
تروس لوړ یې دخپل زړه او سینې زغم سو

وباښـــې تـــه کـــاغۍ راغللـــه پـــه پوښـــتنه
چـــې یـــې وکـــړه پـــر بچیـــو گـــر وېرنـــه
دا فریـاد نـارې پـر څـه کـړې لـه ستمه ؟
نـــو باښـــې کـــاغۍ تـــه وکـــړ دا بیـــان
دگیـــدړې لـــه چمـــو یـــم پـــر نېـــران ☪
را نـــه وړې یـــې بچـــې دگـــل پـــه شـــان
کـاغي ورتـه ویلـه کـوم کلنـگ کومـه بېلچـه
چاره کـول یـې ښـه دي پـه تـبر ه یا پـه تېشـه
که دا نـوې وروبـې کـړم لـه بـل ځایـه چاره
باښې ول پردایوچیچې نوکله قناعت کـوي کـاغۍ!
نن وو که سبا ؤ بـل چیچـې یـې در نـه وړۍ
په پاې کې یې تمام اولاد بس ستا در ختموۍ
دکـاغۍ لـه وړانـدوینې سره راغلـه مکرجنـه ☪

لــه باښـــې یـــې پــه ټینګـــاروکړه غوښـــتنه•

باښې ویـل پـه چل کې دې ښـکارېږې تښـتونه

ګې‌دړې لـه باښـې چـې  دا جـواب را واورېـدۍ

پـه فکـرکې  باښـه یـې کړلـه ډېـره سـادګۍ

دا عقـــل ددې نـــه دې دا خـــو پنـــدې دې دکـــاغۍ

نـــو راغلـــه دکـــاغۍ پـــه لار کې پرېوتـــه ګېـــدړه

دمـــړې پشـــان خـــوار ه او پـــه دوړو خـــړه پـــړه

پـــه خـــاورو او پـــه ختـــو یـــې ککـــره کـــړه ککـــړه

مېږیـــان یـــو پـــه بـــل پسې‌ـ پـــه خولـــه ننوتـــل

مچـــان بـــه یـــې پـــر ســـترګو او پـــر پـــزه بونېـــدل

دهرچـــا بـــه تـــر ســـترګو بـــس یـــو مړګـــه ښـــکارېدل

کـــاغۍ چـــې ســـوه پـــر پېښـــه  پـــه مشـــوکه یـــې وهلـــه

ګیـــدړې پـــه داغـــه وخـــت ښـــه نقشـــه تیارولـــه

فـــوراً یـــې کـــاغۍ خـــواره پـــه خولـــه ټینګـــه ونیولـــه

---

• البته ددې منظومو کیسو په لوستنه کې بـه ځنـې سـېلابې ټکرونـه را ځـې هغه به درنو محقیقینو ته پرېږدو

کـاغۍ ویـل گیـدړې تـه مـې ومنـه یـو سـوا ل
ایلـه مـې گـوره نـه کـړې تـر گړنـگ او تـر دېـوال
چـې ورك بـه لـه اولاد مـې سې بـدن ،پـره او بـا ل
دگیـدړې سـد کـوره سـو پـه فـوراً یـې ځغلولـه
پـه غـره کې یـې څـه لـیرې تـر گړنـگ وغورځولـه
بـې گنـاه چالـه دار نسـته کـاغۍ جگـه والوتلـه
کـه نـیکې ده کـه بـدې ده دهـر چـا یـې بولـه خپلـه
چـې بـد نـه کـوې یـارانو ازار نسـته پـه هـیڅ کلـه
پـه چـل لکـه کـاغۍ چـې لـه گیـدړې والوتلـه

## مرد او نامرد

زوې ویــــــــل بابکــــــــه
تــه یــو نقـل راتــه وکــه !
پــــلار ویــــــل زویکــــــه
تــه نــو ښــه ـــ ښــه یــادوه
شه !☪



لیکوال: څارنوال منګل احمد خان

پخـــوا يـــو دوه کســـان وه
پـــــرلار بانـــــدي روان وه
روان مـــــخ بيابـــــان وه
يويې پراس سپورؤودا بل يې و پياده
تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه
شه !

ســـپاره ويـــل زه مـــــرديم
پيـــاده ول(ويـــل)زه نـــامرد يـــم
پـــه نـــامردو کي يـــو فـــرد يـــم
دخبرويادونه يې ترمنځ سوه را بطـه
تـــه نـــو ښـــه ـــــــ ښـــه
يــــوه خــــو ملګـــــري ده
بـــــل زمـــــا مردانګــــــي ده
داغـــــه زمـــــا ځــــواني ده

خبري سره سم مرد سوله آسـه را شوه
تــه نــو ښــه ــــ ښــه يــادوه
شه !

نــامرد تـــې (تــه يـــې ) وويلــه
زمـــــــــا دلاري ملــــــــــه
داس نورتهينـــگ کـــړه ولـــه ☪

نورتــه يـــو گـــړئ ســـپور ســـه
پـــر اس بانـــدي را خپـــور ســـه
هـــو ســـا دتـــگ پـــر لـــور ســـه

نامردچي پرځين سپورسـو اس يـې
تـــــــــراټ وځغــــــــــلاوه
تــه نــو ښــه ــــ ښــه يــادوه
شه !

مـــرد ول اس مـــې دربخښـــلئ

ولي ځغلـــــــې نـــــا ښــــاغلۍ
بـــــد بختـــــه غلـــــۍ غلـــــۍ
پاته دي پرچول کړم تریوځاي مـې رسوه
تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه یـــادوه
شه !

نـــــامرد نـــــه گـــــوري شـــــاته
دمـــــــرد خـــــــوارکي خواتـــــــه
آس یـــې هـــې کـــړ وصـــحرا تـــه
په کیسه کې یې نورنه ؤپه تکلیف یې وه راتله
تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه یـــادوه
شه !

مـــــــرد ول مردانـــــــــه یـــــــم
پـــدي پـــاتو خفـــه نـــه یـــم
پـــر مـــردي پښـــېمانه نـــه یـــم

والله نه يم بې ننګه چې مې وچوي زهـره
تــه نــو بنــه ـــــ بنــه يــادوه
شه !

بيــا لــه ځانــه سره ګــډ ســو
چـــي پـــر څـــه وار خطــا کېـــږم
دمــــرد پــــه نــــوم يـــادېږم
لـه سره مـي تراوسـه بـس مېړانـه خوښـه ده
تــه نــو بنــه ـــــ بنــه يــادوه
شه !

پــه مېړانــه کي ژونـــد بنـــه دي
دنــــامرده ژونـــــد دمـــــړه دي
همـــــــــــت دمردانـــــــــه دي
پـه ژونـد دپېغورونوخـوي پـه ځـا ن مـه خوښـوه
تــه نــو بنــه ـــــ بنــه يــادوه

شه !

نـــــه کـــــلي ؤ نـــــه کــــورؤ

دهـــــــري خـــــواورك لـــــورؤ

نـــــه پاتـــــــه ور پېغـــــــورؤ

روان پرتهولــه لاروچـــي پرراغلــه تـــوره شـــپه

تـــه نـــو بنـــه ـــــ بنـــه يـــادوه

شه !

بــــس دمـــرد پـــرمخ يخنـــى وي

بـــــــادړه ☪ او ســــــــېلى وي

تكليـــــــف نــــوري خــــوارى وي

يــوغره تــي پنــاه راوړه رڼــاورځ ســوله تيــاره

تـــه نـــو بنـــه ـــــ بنـــه يـــادوه

شه !

دغـــــره پـــــه غيـــــږ كي غـــــار ؤ

دمـــــرد هـــــم خطـــــا وارؤ
راحـــــت تـــه یـــې تلـــوارؤ
کرارغارتـه داخـل سـوپر اللـه یـې سـوه تکیـه
تـــه نـــو ښـــه ــــــ ښـــه یـــادوه
شه !

ســـــبا تـــــه انتظـــــار کي
چـــي خـــداي بـــه نـــور ســـهار کي
او خلاصـــــه بـــــه مـــــي لار سي
مړانـه یـې پـه ختـه کي دمـرد یـې وه قیافـه
تـــه نـــو ښـــه ــــــ ښـــه یـــادوه
شه !

ســـــــــو ږغ دحیوانـــــــــانو
دځنګلـــــــــه دشـــــــــامردانو
دزمـــــــري لیـــــــوه پړانګـــــانو

کتار(قطار)کي ورسره وه پخوانۍ ګیدو خاله ته

نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه

شه !

ګيـــــــــدړي ول زمريـــــــــه

پاچـــــــــايې ګرنديـــــــــه

زمـــــــــوږ دسر ســـــــــړيه

دنس حال راته وايه زلخوږتيا دي ښنګه ده

تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه

شه !

اې پاچا!تـــه خـــوزمرئ يـــې

پرتهولـــو بـــر يـــالي يـــې

دهـــر کـــار توريـــالي يـــې

دلوږي اودتندي دهنګرتياحال را

کـــــــــــــوه

ته نو ښه ـــ ښه يادوه
شه !

زمري ول يم نتلي
له ښکاره يم لوېدلي
زلخوړي دردېدلی
دنس چاره را وکي نوره چوي مي
زهره

ته نو ښه ـــ ښه يادوه
شه !

لېوه ول پرداغوندی
چي ها ونه ده شينکی
بي څه نه ده ګېډی
ترلاندي يې پرته ده دياقوتو خزانه
ته نو ښه ـــ ښه يادوه

شه !

چـــــــي پـــــــانې ددې وني
دســـپي وي ســـترگي ســـپيني
معجـــــــون سي دخـــــــوړني
داغه لویه دوا او دناجوړو ده ټوټکه
تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه
شه !

داغـــــــه لـــــــو يـــــــه دوا ده
پيـــــدا چـــــي پـــــر بيـــــديا ده
اکثـــــــير لويـــــــه ســـــــونا ده
لېونی دپاچا لـورده او داغـه يـې دوا
يـــــــــــــــــــــــــــــــــــــې ده
تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه
شه !

## دګيـــــدړي چـــــي ســـــو وار

نـــو شروع يـــې کـــړي ګفتـــار
ول دهـــا پـــاڼ وښـنـــګ تـــه غـــار
ترې لاندي شل روپۍ ديوې مړې تماشه
تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه
شه !
پـــه ټـــو پـــو او خوشـــحاليو
پـــه شرنـــګ شرنـــګ ددي روپيـــو
مـــړه عشـــق کـــړي دپـــاوليو
مازديګرتې بيرته راوړي دساتني په فلمه
تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه
شه !
زمـــري ول چـــي پـــه تپـــاك يـــم

لــه بدنــه ډېــر خوارځــواك يــم
ډېــر وږي بــې چينبــاك يــم
تاسې وگورې دا نبض که مو وکړله چاره
تــه نــو ښــه ـــ ښــه يــادوه
شه !

تـــر خـــبرو ورســـته ټولـــه
پـــر خپـــل لار ســـوله وكورلـــه
دځنگلـــه دمېنـــې لـــور لـــه
پرمردباندې سهارسودهغې شپې توره تياره
تــه نــو ښــه ـــ ښــه يــادوه
شه !

ســـــهار ولاړل ځنـــــــاور
پـــر مـــرد راوخـــوت لمـــر
بـــس پـــر غـــار ور برابـــر

دمېږي غارګډې کې يې پيدا کـړه خزانـه
تــــه نـــــو ښــــه ـــــ ښـــه يــــادوه
شه !

مــــــږي يــــــوه روپـــــــۍ
را ايســــــــــته پـــــــه خوشـــــــحالۍ
لــــــــــه هوســــــــــه تلــــــــــولۍ
مردراڅوليکړې وځانته اوپيـدايې کـړه توښـه
تــــه نـــــو ښــــه ـــــ ښـــه يــــادوه
شه !

مــــــرد راواخيســــــــــتې پيســــــــې
بــــــس پــــــر لار يــــــې حســــــابې
هاهلـــــــــــك يـــــــــې درمـــــــــې
چـې پيـدايې کې پـرلاره ورسره يـې وه رمـه
تــــه نـــــو ښــــه ـــــ ښـــه يــــادوه

شه !

له هلك يې واخيست سپۍ

ډېر هوښيار ؤ دا سړي

سپۍ په رنگ ؤ کرکۍ

هلك بېعقل يې پرېښود

سو بې سپيه بې رمه

ته نو ښه ـــ ښه يادوه

شه !

مرد په تگ نه کړل سوستي

ولاړ دوني تر ځايگي

چې ، خزانه را وسپړي

دوې سترگي ددې سپي پاڼي ددرختې

کړې نسخه

ته نو ښه ـــ ښه يادوه

شه !

تـــرې جـــوړه يـــې دوا کـــړه

ســـوغات يـــې دپاچـــا کـــړه

دربـــار تـــه يـــې وړيـــا کـــړه

ول په دې دوابه جوړه سي ستالورلېونی وه

تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه

شه !

پاچـــــا ويـــــل حبيبـــــه !

زمـــا دوســـــته طبيبـــــه !

زه يمـــــه خـــــوش نصـــــيبه !

داغـه ستاپه دوا کـه زمـالورراجوړه سوه

تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه

شه !

کـــه زمـــا لـــور ســـوله جـــوړه

پــه احســـان بــه دي ســـم مـــوړه
دادرد بـــه مـــــي کـــړې ســــوړه
انعام مي دغه لورده  په نکاح يـې خوښـي کـړه
تـــه نـــو ښــــه ـــــ ښـــه يــــادوه
شه

دا چــــــي زه زوي نــــــه لـــــــرم
لـــــــــــور وتاتـــــــــــــه ودوم
پــــــاچهي مــــــي درســـــــپارم
داغه مي بـس وعـده ددې رنـځ عـلاج کـوه
تـــه نـــو ښــــه ـــــ ښـــه يــــادوه
شه !

چـــــي پــــــرون وه لېـــــــونی
جــــوړه ســــوه هغــــه نجلــــی
نـــې ده رنـــځ احســــاس کـــوی

بس دمردچې په نکاح سوه دا ـــ ـ
دژونـــــــدوه ښـــــــه شـــــــېبه
تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه
شه !
مـــرد لـــه ډېـــري خوشـــحالی
هـــــا دوني پـــــر غونـــــډی
کـــړل کـــلا ښـــکلې کـــوټی
بيابنا اومزدوران سوه ختې گل او گٍلاوه
تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه
شه !
پـــر را جـــوړه يـــې کـــلا کـــړه
خپلـــه ورځـــه يـــې هوســـا کـــړه
هـــم ماينـــه يـــې دلا ســـا کـــړه
تښتولي چي يې اس ؤ ډېر تر مخ نامردانـه

تـــه نـــو ښــه ـــــ ښــه يـــادوه
شه !
دمــــرد پـــــر شـــاؤ خــــوا
تـــــر ډېــــر تلـــــلي پخــــوا
پـــــر هـــــر کــــور هـــــره کـــــلا
وه تللــي ترملکونـو دمـرد نـوم او اوازه
تـــه نـــو ښــه ـــــ ښــه يـــادوه
شه!
د مـــــرد هـــــا ښــــکل آس
چــــي نــــامرد وړي ؤ پــــاس
مــرد تــه راغــي پــه درخــواس☪
زه يوستاله مزدورانـو چـي مـي ستاسره وه پـړه
تـــه نـــو ښــه ـــــ ښــه يـــادوه
شه !

نـــن را تېـــر مـــي تـــر ګنـــاۀ ســـه
پخـــوا غونـــدي پـــه وفـــا ســـه
مهربـــان مـــي پـــر خطـــا ســـه
پربدو باندي عفوه همېش خوي دنارينه
تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه
شه !
مردويــــــــــل نــــــــــامرده
نـــامردي دي ســـه نـــا ګـــرده
ګتہـــه نـــه لـــري بـــې درده
تېرتېـــر هېـــر هېريـــې پـــر هـــير
ارام کښـــــېنه پـــــر کوربچــــــه
تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه
شه !
نــــامردول يــــــم نــــــاځوان

پــــــــرخبره یــــــــم پښــــــیمان
چـــــي وې پاتـــــه پــــر بیابــــان
مازیګرؤ ډېریخني وه راته ژوندخوړ ترهـر څـه
تـــــه نــــو ښـــــه ــــــ ښــــه یـــادوه
شه !

زه چـــــــي ســــــوم لـــــــه تــــــا روان
پـــــر هغـــــه دښـــــت بیابــــان
چـــــي تـــــه وې کي سر ګـــــــردان
دخـــداي دغـــه احســـان دي چـــي ســـوې پاتـــه پـــررووده
تـــــه نــــو ښـــــه ــــــ ښــــه یـــادوه
شه !

مــــرد ویـــــل نـــــامرده یخـــه شـــــپه
نــه کــور او نــه کــوم کــلي ښــکاریده
دژونـــد هیلـــه مـــي ســـترګو نـــه لیـــده

نامردنــــه وم مــــردوم هرســـــاعت دژونـــد خطـــره
تـــــه نــــو ښـــــه ــــــ ښـــــه يــــادوه
شه !

دغـــــــار پـــــه ټولــــــه حـــــال يــــــې
نــــــامرده لــــــه جنجــــــال يــــــې
خــــــــــبر کي دامهـــــــــال يــــــــې
نــامردول پــه رشــتيا داللــه خــوښ وي نارينــه
تـــــه نــــو ښـــــه ــــــ ښـــــه يــــادوه
شه !

مـــرد چـــي دمـــردی کـــول کيســـــه
نـــامرد تـــه يـــې همـــدا خـــبره کـــړه
پـــه ژونـــددي نـــامردي مکـــړه پېشـــه
تـــــه نــــو ښـــــه ــــــ ښـــــه يــــادوه
شـــــــــــــــــــــــــــــــــــه !

نامرد چي بيان واورېد

ډېر له شرمه سو ګوښه

له مرده په فلمه

د مردترکوردباندي سو

پردښت باندي يې شپه

ته نو ښه ـــ ښه يادوه

شه !

پر لور دهغه غار سو

هورې کي انتظار سو

ومرگ له ره تيار سو

نامردچي په غوښه پټ ؤځناوروته توښه

ته نو ښه ـــ ښه يادوه

شه !

نامرد چي دروپيو

په چورت کي دپاليو

مېلمه سو دزمريو

هغه ځاي كي سوپاته

چي دمردوه تېره شپه

ته نو ښه ـــ ښه يادوه

شه !

ځناور دغار وخولې ته

راغلل خوړې ګولې ته

دګيدو خاله كيسې ته

ول زمادچاغښت حال دي

تاسي واوري دا خوږه

ته نو ښه ـــ ښه يادوه

شه !

را تلم چي دغار خولې ته

يوې يوې پيسې ته

حلوا وه هري شپې ته



ليكوال: څارنوال منګل احمد خان

سـهار چـي غـار تـه را غلـم
پيسـي نـوي مـړه مـره
تـه نـو ښـه ـــ ښـه يـادوه
شه !

نوبـت چـي دلپـوه سـو
دځـان پـه ګډېـده •سـو
زمـري تـه پـه خوالـه سـو

---

• په لوړه پښتونخوا کي ګډېدل د((نڅا)) کولو په معني دي لکه چي وايي :
تـه چـي زمـا دګنګـرو ګـانو پـر شرنګـا مـين يـې
درته راځم په چورلکونو پر(( ګډا)) مين يې
خو دکندهاراو دهغه په شا خوا سيمو کي بيا په يوه موضوع کښي دداخليږدو
او يا هم دخبروکولو په معني دي لکه : (( بالانو مه ګډېږه ! نفس دي را تنګ
کي )) بالا چپ سه (( خبري مه کوه !))
صاب دلته دصاحب معني ور کوي چي موږ او تاسي يې باندار چي يا مجلس
کوونکي بولو خو اصلاً که صاب د((ب)) په مفتوح والي سره وويل سي نوبيا
د((رسېدني)) معني ورکوي

یوخـــــــووړځي خــــــدل مــــــړي
ؤپـــــــروت ؤزمــــــــا ګولــــــه
تـــــه نــــو ښـــه ـــــ ښـــه یـــادوه
شه !

خـــــونن چــــي هغـــــه نســــته
حــــیران تلــــلي یـــــم نــــس تـــه
ناتوانــــــه یــــم هـــــوس تــــه
دخــــداي پـــــار دي پاچـــــا صـــاب
☪ نــــور را ومـــــــي کــــــه چـــاره
تـــــه نــــو ښـــه ـــــ ښـــه یـــادوه
شه !

زمـــــري ول غــــــوړ ســــه ماتــــه
چـــــــي څـــــه وایــــــم وتاتـــــه
ځــــان پـــوه کـــړي معـــما تـــه
پــــــــه ســــــــپي،مړي اودرختـــــــي

یوځــــــا کـــــــړې ده کانــــــــه
تــــه نـــو ښـــه ــــــ ښـــه یـــادوه
شه !

یـــو نـــا اهلـــه پـــدې غـــار کې
پــــــټ ســــــوې ؤ کنــــــار کې
ووغــــوږ یـــې زمـــوږ ګفتـــار کې
کنــــه نـــو پـــر څـــه جـــوړه
هـــــا کـــــلا او هـــــا باغچــــــه
تــــه نـــو ښـــه ــــــ ښـــه یـــادوه
شه !

هغــــه لـــــور چـــې دپاچـــــا ده
ورکــــــړې یـــــې پـــــــر دا ده
وروړې یـــــــــــــــــــــې دوا ده
لـــــه مــــوږ یـــــې اوریـــــدلې

دپخواوختـــــــــو کيســــــــه

تـــه نـــو ښــه ـــــ ښــه يـــادوه

شه !

نـــو کـــه زمـــا پـــه خولـــه کـــوې

چـــې دا غـــل نورپيــــدا کـــړې

کـــړې پـــه غـــار کې تلاښـــــې

کېـــــداي سي نـــــن دلـــــــې وي

دپــــــــــرون هغـــــــه لـــــــوده

تـــه نـــو ښــه ـــــ ښــه يـــادوه

شه !

چـــــې ننوتـــــل غـــــار تـــــه

کتـــــل يـــــې هـــــر کنـــار تـــه

ددې ورځـــــــــې گفتــــــار تـــــه

ناڅاپــــه يـــــې ترمـــــټ ټينـــــگ کـــــړ

غــــــلي ناســـــت نامردانــــــه

ته نو ښه ښه يادوه
شه !

نامرده خوار چې نارې کړې
پر کلي يې خپرې کړې
حاضرو ننداري کړې
مرد چې☪ نارې واورېدې
په تراټ رارسېده
ته نو ښه ښه يادوه
شه !

مرد چې ورته راغې
ورته ګډ خپل په وينا سو
محضر له ګويا سو
چې داخوارکي☪ نه ؤ
هغه زماوه کارنامه

ته نو ښه ښه يادوه

شه !

خبرچي ځناور سول

دمرد په زېر او زورسول

حيران له دي خبر سول

چي هغه دومره نامرده

تېي ☪ هنوز کوې سيله

ته نو ښه ښه يادوه

شه !

ځناور سوله حلقه

پر نامرد کړي فيصله

چي وې کاړي ريښه

چي کړې يې نامردي ده

خاص په حق دمردانه

ته نو ښه ـــ ښه يادوه

شه !

لېوه ونيوي تر لاس

گيدو را ونيوي تر پښه

زمري يې څيري کړل سينه

نامرديې پښه پرپښه کي

نور له ژونده سو گوښه

ته نو ښه ـــ ښه يادوه

شه !

يو اديب دخپل مطلب

کنايتاً کوي ليکنه

چې هر پيغام لرينه

ليکنه يې يو ډول وي

پيغام يې نور غايه

تــــه نــــو ښــــه ـــــ ښــــه يــــادوه
شه !
لکـــــه محمـــــد گـــــل ((نـــوري))
پـــــــه ټـــــــبر وو نـــــــورزائي
او ليکنـــــــه يـــــــې مـــــــلي ☪
دمردنامردپشـــــــــــــــــــــاني
نـــــور نقلونـــــه يـــــې خـــــواږه
تــــه نــــو ښــــه ـــــ ښــــه يــــادوه
شه !
کـــــوچني محمـــــد امـــــين ☪ تـــــه
زمـــــا نـــــوراليقين تـــــه
دزړه ونمکـــــــــين تـــــــــه
ترتيـــــب داغـــــه کيســـــه ســـــوه
بخښـــــه کـــــړی پـــــر تېروتـــــه

تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه

شه !

کنـــــدهاري غونـــــدي پوهـــــانو

((رشـــــاد غونـــــدي)) مشرـــــانو

زمـــــــــــــــوږ دمخکښـــــــــانو

اجرونـــــــــــه دزحمـــــــــــت دي

((قـــــران مـــــل ))تـــــه وي تحفـــــه

تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه يـــادوه

شه !

پـــه يـــاد گـــار د بـــاميزو تـــه

کـــورنی دگـــران حبـــو تـــه

د شـــــــــعيب واولادو تـــــــــه

پـــــر مېنـــــه يـــــې پيـــــدا دي

غريبـــــك پشـــــان ســـــتانه

تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه یـــادوه شه !

نـــور خـــتم مـــې بیـــان دي

((رفیقـــي))[☪•]گـــل دبوســـتان دي

ژونـــد خـــلاص تمـــام یـــې آن دي

ځارنوال((منگـــــــل احمـــــــد))مو

ددعـــــاؤ پـــــــه خواســـــته

تـــه نـــو ښـــه ـــــ ښـــه یـــادوه شه !

---

☪ مـلي ليکنـي څخـه مـراد دمرحـوم محمـد گـل نـوري ((مـلي هنداره ده )) ده

☪ لـه ((رشـاد)) څخه مـراد خـداي بخښـلي اکـاډ مېـسن پوهانـد عبدالشـــکور ((رشـــاد )) صـــاحب دي چـــي د۱۳۸۳ لمريـــز

کـال دقـوس پـر ۱۱ نېټـه پـه کابـل کې خپلـه روح داجـل ملکې ته وسپارله .

☪ محمـد امـین چـې ښـاغلي څـارنوال منګـل خـان ددې لیکنـې په خطـې اصـل کې پـه محمـد امـین کـاکړ یـاد کـړې دنومـوړې زوې چـې پسـله نـژدې اویـا کلونـو څخـه ورسـته خداې وڅارنوال صاحب ته ور کړې

☪خونګۍ (( خونه ))

☪ کې یعنې ((په کښې کې ))

☪ ول د(( ویـل )) لهجـوي مخفـف دې چـې ددې کتـاب تـر پایـه بـه ځینـو ځـایو کښـې پـر دې اسـاس کـارول سـوي سـول چـې دسـېلابونو کمښت او پوراینه مدنظر په کښې نیول سوېده

☪ ګیدو ((ګیدړه ))

☪ کې (( کې یې ))

☪ نـیران پـه عـربې کې ددوږخ دیـوې شـېلې معنـې ور کـوي خـو دلتـه کړاو او زحمت ځینې مراد دې

☪ مکر جنه (( ګیدړه ))

---

☪ شۀ  ښخه مراد ديوه ماشوم په تلفظ د((ښه)) تائيد دي چې دلته نومورې ليکوال دامنظومه کيسه خپل ماشوم زوي ته کوي او هغه د((هو )) په تائيد ((شۀ شۀ )) ورته وايي

☪ ((ول )) داس جلب چي موږ او تاسي يې جلو بولو

☪ بادړه ((دوړدوړکه )) بوړ بوکی ، چې زموږ ځيني ليکوال يې دنه معلوماتو دلرلو پر اساس د((پروانې ، پتنګ)) په معني کاروي

☪درخواس   ((درخواست ))

☪ کي  ((پکښې))

☪صاب ((صاحب ))

☪ چې ((چې يې ))

☪ دا ((نامرد ))

☪ تې (( ته يې ))

☪ له (( حبو )) ښخه مراد علامه حبو ((حبيب الله ))اخوندزاده دي چي دمرحوم علامه عبدالحي حبيبي دوي دکورنۍنيکه کېږي

☪ له شعيب ښخه مراد خداي بخښلي شعيب اخوندزاده دي چې دمرحوم ملا عبدالاحد غريبك ور نيکه کيدئ او داعلحضرت تيمور

شـا دراني معـاصر ؤ او دنومـوړي بـاميزو کـوځې دزړې جـامع خطابـت يـې پر غاړه ؤ

☪ پـه معـاصر پښـتنو ليکوالـو کښـي مـوږ دوه تنـه د((رفيقــي)) پـه نامـه لـرو چــي يـو يــې پــه جنـوبي پښـتونخوا کي دعبـدالروٌ ف ((رفيقــي )) پـه نـوم يـادېږي خـو دلتـه دښـاغلي مـراد دکنـدهار دپـوهني اوسـنۍ ريـئس ښاغلي حيات الله ((رفيقي)) دي